# غزل

راشــه چــې لــه زړه پــه مــات اواز څــه درتــه ووایــم
نــن بــه د رنــدانو پــه انــداز څــه درتــه ووایــم

گــوتې بــه د څړیکــو د خپــل زړه پــه مرانــدو کېږدمــه
پــټ بــه د ســلگو ســلگو پــه ســاز څــه درتــه ووایــم

زمــا پــه لېونتــوب کــې یــې منطــق راتهوکــولای دی
نــور د خپلــې مینــې د اعجــاز څــه درتــه ووایــم

تــه بــه پــه ترپکــو د بلــۍ ســر تــه راوخېــژې
زه بــه پــه ســرو ســترگو لکــه بــاز څــه درتــه ووایــم

زه چې شومه ته او ته شوې ورک زمــا پــه خیــالونو کــې
بــل د محبــت جانانــه راز څــه درتــه ووایــم

تــه یــې پــه کنــډو چــې تــل د خپــل نــاز کرشــمې کــړې
زه بــه د )حســن( د زړه د نیــاز څــه درتــه ووایــم

# غزل

انځور دې مستقبل کړه د تدبیر په آیینه کې
ماضي یوازې ښکاري د تقدیر په آیینه کې

زه ستا مخ ته ولاړ او ژوند زما په تمه ناست دی
الفت کړم د تصویر غوندې اسیر په آیینه کې

لږ غور شه په ارام راته اشنا چې تصویرونه
ګډوډ شي د اوبو د تېز بهیر په آیینه کې

خود وایي به (حسنه) ملامت ستا پر شعرونو
هر عیب چې د تصویر ګڼي تقصیر په آیینه کې

تش نوم یې راته بیا تېر شوی ژوند مخې ته کېږدي
ښکاره لکه د شا چې شي تصویر په آیینه کې

پتنګ غوندې (حسنه) که پرې ځان سېځلی نه شې
خورې کړه رڼا ګانې د ضمیر په آیینه کې

## غزل

زمونږ که له زخمونو د پرون لمنه ډکه ده
نن مو هم له څړیکو د ژوندون لمنه ډکه ده

ګوره له ګلکځ نه د ښکلا، بحر د اوښکو مې
څومره له غورځنګ نه یې د یون لمنه ډکه ده

زړه مې ستا رمه د خاطرو په مخه کړې ده
بیا چې له تېږو نه ددې شپون لمنه ډکه ده

رابه وړي که خدای کول د سولې پتاسې پکې
نن که له سکروټو د پښتون لمنه ډکه ده

ستا که خورې څڼې پرېشانۍ په مخه کړي دي
زمونږ هم له سودا نه د جنون لمنه ډکه ده

ډېر به دي پر حُسن د وفا رنګونه وشیندم
لا خو مې د عشق د زړه چاودون لمنه ډکه ده

ډېر دي یې په زړه "حسنه" وخوړل درانه کاڼي
څومره دې لا نوره د بېلتون لمنه ډکه ده

## يو شعر

شپه شوه تېره سپيدې وچاودې سحر شو
کيسه زما د زړه چاودون تمامه نه شوه

✵

وې: اوربدې د بېلتون شپې دې چې شي هېرې
راشه نن دې په اوربدو څڅو کې پټ کړم

د حيا پردې به ورو ورو کړمه پورته
کړم خبرې به وړې زړه به مې غټ کړم

## غزل

مانـــه يـــې د زړه د پرهرونـــو کيســـې هيـــرې دي
ســتا څنګــه د زړونــو د ټوپونــو کيســې هيــرې دي

بيــا يــې لــه تنــدي دي کوڅېــد لي د الفــت نخښــې
بيــا لــه دې آيينــې د تصــويرونو کيســې هيــرې دي

بــس دی مــه پوښــتئ د اقتــدار لــه بد مســتانو نــه
دوی نــه د غورځنــګ او بــدلونونو کيســې هيــرې دي

ســتا د تشــې خېټــې لــه عذابــه، بــه شــي څــه خبــر
دوی چــې اوس د لــوږې د دردونــو کيســې هيــرې دي

څنګــه بــه شــرير پــر شــرارت بانــدې څــوک پــړ کانــدي
مــونږ چــې د ضــمير د فريــادونو کيســې هيــرې دي

دا ده لا خــو وايــم پــه لــوګن وخــت کــې د عشــق غــزل
څوک وايي؟ خوشبو نه د ګلونو کيسې هيرې دي

بــس ده ســمندره د ژونــد مــه مــو وېــروه جــذبې
زمــونږ لــه دې څپــو د توپــانونو کيســې هيــرې دي

وينم دې "حسنه" په هر شعر کې د احساس تصوير
چا وې:؟ له دردونو د زخمونو کيسې هيرې دي

کـه ارام يـې دی د زړه راځنـې وړی
خو سبب مې د ژوندون هم محبت دی

يوه گړۍ مې پخپل ځان پورې حېران کړي
بل ساعت مې مضطرب زړه ته راحت دی

# غزل

لېونی چې مې نن بیا د زړه موسم دی
د اشنا د مستانه نظر کرم دی

د بېلتون په جل وهلي بیابان کې
ستا د خیال د څڼو سیوری مې همدم دی

تور د عشق به مې له عشقه زړه تور نه کړي
چې هر دم راسره ستا د حُسن دم دی

چې په برخه د مورېک شوه شپه د ژرندې
نو بیا چا وې: چې حاکم د کابل گرم دی

خوشحالي مې د زړه کور ته راتلی نه شي
دروازې ته یې د مینې غم اړم دی

په رنګونو د لفظونو کې مې ډوب کړ
نور مې تش د زړه له وینو نه قلم دی

اتڼچیان یې د یادونو ورته ناڅي
بیا رایاد یې د خبرو زیر و بم دی

فرښتو يې تخيل دی لمسولی
هر غزل چې د "حسن" صنم صنم دی

✸

څو شېبې مو چې د اوښکو باران تم شي
د سندرو قاتلان چېرې راواخلي

مونږ چې کله هم قلم ته ګوتې وروړو
زمونږ د پوهې دښمنان چېرې راواخلي

# غزل

په سندرو کې به ورک یم په سلګو کې به مې غواړې
لټوې به به بهارونه په وږمو کې به مې غواړې

په نیلۍ د خیال به درومې، په زړه موږ به یې له حاله
د وختونو په لوټ شوو قافلو کې به مې غواړې

لکه خوب دومره نږدې چې درته نه یم بې قرار یې
ګوره ژوند دی نو تر کومه په لېمو کې به مې غواړې

سندریز خوب به د مینې نیمه شپه یې پاڅولی
د رباب پردې به سپړې په نغمو کې به مې غواړې

د مَېنو د مچکو، انګازې د خرپ به اورې
له ګلاب به کړې پوښتنه په خوشبو کې به مې غواړې

زه "حسن" به درنه ورک یم، زړه د هر مَېن به سپړې
پلټې به یې دردونه په زخمو کې به مې غواړې

## غزل

دا په ثواب که په ګناه مينه خوره وره شوه
خدايه نن بيا مې په ښکلا مينه خوره وره شوه

په خوله د شمعې د مزار مې کړئ خبر که مړ وم
چې په وطن لکه رڼا مينه خوره وره شوه

احساس مې وتراشل تړې ياره د شعرونو غمې
په کانې زړه مې چې د تا مينه خوره وره شوه

هره وينا د خلکو نيسم د موسکا په غېږ کې
ماته د تورو په معنا مينه خوره وره شوه

دا دی ادا مې کړ د تا د حُسن قرض جانانه
ستا چې په ناز او په ادا مينه خوره وره شوه

اوس يې نو وکاږئ په منځ کې په اسمان کې کرښه
اغيارو بيا په پښتونخوا مينه خوره وره شوه

ستا خو بدلېږي ارزوګانې دم په دم جانانه
زما خو په هره تمنا مينه خوره وره شوه

اغوندي ساندې د "حسن" هم سندريزې جامې
خدايزده په شعر يې چې د چا مينه خوره وره شوه

شي د رپسې به ډېر ساړه اسويلي
د مخ پانوس کې سره لمبه ګرځوي

خامه جينۍ يې په دې نه پوهېږي
خامه خولګۍ په پخه شپه ګرځوي

## غزل

ویـــاړې کــــه تــــه پــــه دې ذلـــت پـــه ډاگـــــه
زمـــونږ خـــو خـــوښ دی بغـــاوت پـــه ډاگـــه

پـــــه شـــــنو ډالـــــرو یـــــې زړه وپړســــېدو
اوس چـــې اقـــرار کـــړي د رشـــوت پـــه ډاگـــه

وايـــي ژغـــورم خـــو دې لـــه يـــوه گاونـــډي
پـــه بـــل دې پلـــورم کـــه عـــزت پـــه ډاگـــه

پـــرون يـــې ږيـــرو کـــې ريـــال ټولـــول
نـــن د شـــيطان کـــړي عبـــادت پـــه ډاگـــه

د غـــلا لـــه خونـــده يـــې بـــې برخـــې نـــه يـــو
بـــس کلـــه کلـــه کـــړو الفـــت پـــه ډاگـــه

مـــونږ محبـــت پـــه خولـــه راوړلـــی نـــه شـــو
دوی ځنگـــه کـــړي دومـــره نفـــرت پـــه ډاگـــه

پـــرون دې وې: غـــم دې پـــه اوښـــکو ويـــنځم
نـــن مـــې د ســـر اخلـــې قيمـــت پـــه ډاگـــه

"حســــن " د زړه پــــه اور شـــیندلې وینــــې
بــــس دی نــــور وایـــــي حقیقـــت پــــه ډاگــــه

مـــخ تــــه ورواغونــــدې جــــامې د موســــکا
خــــو دې لـــه ســـترگو پټــــې اوښـــکې درومــــي

مـــا درتــــه وې: نــــاز دې پــــه ســـترگو مـــه کـــړه
لـــــه غټــــو ســــترگو غټــــې اوښـــکې درومــــي

# غزل

زړه درکوم زړه درنه غواړم درځم
نور مې له خپله ځانه لاړم درځم

د بېرته ګ په اراده نه درځم
لار د راتګ راپسې نغاړم درځم

چې د تلو غم ته اوښکې پاتې نه شي
نن په راتلو درسره ژاړم درځم

څوک دې ښکلا یاره لوستلی نه شي
د مینې ژبه کې دې ژباړم درځم

ډېر مې د هجر په یخنۍ وخوړې
تودو مچکو کې دې نغاړم درځم

نوم د "حسن" دې شي موسکا په شونډو
په پښتنه حیا دې ویاړم درځم

# غزل

نن بیا درته د سترګو ښتنو اوښکې دروړم
محفل ته لکه شمه په لمبو اوښکې دروړم

اوړې به د لفظونو پرې درنې غوندې شي یاره
کیسو ته د بېلتون مې د لېمو اوښکې دروړم

پرده کړي ښتنې دي خو بس ستا دیدن لپاره
تنها کو غوندې پټې د زخمو اوښکې دروړم

دا چا وې: چې اسمان وریځې د باد په څپو بار دي
دا زه یم د خپل غم په اسویلو اوښکې دروړم

لمانځم به دې لندنه په ژړا د مزدورۍ بیا
درځم درته ډالۍ مې د خولو اوښکې دروړم

په هېڅ پرهر ژلي د دردمند په درد "حسنه"
پرهر ته له تنها کو د تاکو اوښکې دروړم

# غزل

هسې نه ته هم شې بیمار د سترګو
دومره مې مه اخله ازار د سترګو

د ژوند له ټولو منډو ترړو ځنې
تش راته پاتې شو غبار د سترګو

په طبیب ذهن مې چاره نه کېږي
زړه رانه واخیستو مهار د سترګو

چې اوبه هم څښو د مارغانو غوندې
له ویرې هر لور ته کړو څار د سترګو

انکار د خولې نه یې وي ټینګ ملګرو
د پښتنو پېغلو اقرار د سترګو

نن پرې راځي د نظارې ناوې یې
اوښکې شیندم ورته په لار د سترګو

اوس یې هر چا ته اړولی نه شم
چا رانه وړی دی اختیار د سترګو

"حسنه" ګرځي پکې پېغلې هيلې
په اوښکو شين ساته ګلزار د سترګو

⁂

پيروي په پټو سترګو جهالت وي
بې شعوره د عمل تکرار عادت وي

معرفت چې ترې د خدای ترلاسه نشي
هسې لمونځ روژه بې روحه عبادت وي

## غزل

جوړ کړم له يادونو د جانان تصوير په سترګو کې
اوښکې ظالمانې يې کړي وران تصوير په سترګو کې

بیا به مې ولاړه د یادونو آیینو ته وي
بیا مې چې غړېږي یو حېران تصویر په سترګو کې

ما هم غزلیز د غزلتورو په رنګونو کړ
تا چې رانښکاره کړو د رومان تصویر په سترګو کې

ته وا چې باران په شنه اسمان اوري چې وخاندې
اوښکې دې چې جوړ کړي د باران تصویر په سترګو کې

ګوټ پسې کړم ګوټ تنده د مینې مې ماتېږي نه
راشي د مالګین حُسن میزبان تصویر په سترګو کې

څرېکې د نظر د پرهرونو مې خُمارې شوې
وینې دې جانانه د درمان تصویر په سترګو کې

نور یې پېغلتوب په پښتنه تقوا بې سبکه دی
وایي یې د مینې د ارمان تصویر په سترګو کې

نن که بې وسې لاس د پښتون پر خوله نیولی دی
وینم یې "حسنه" د توپان تصویر په سترګو کې

چېرته توپان رااوچت کړی وي سر
ټوله فضا چې شي له شوره ډکه

خود به يې خپېژي سري لمبې له خولې نه
د چا سينه چې وي له اوره ډکه

## غزل

نن دې په سرو شونډو پرونې خبرې چېرته دي
وايه ستا د مينې لېونې خبرې چېرته دي

وختل تر زړه مې د بېلتون د خاموشې ازغي
ستا د پسرلي حُسن غوټې خبرې چېرته دي

زما د زړه بيديا به يې جارو چې په نغمو کړله
اوس دې هاغه مستې بوربوکې خبرې چېرته دي

ښکلې به يې مار د پېغلتوب په نڅا راولم
نور مې په غزل کې د مستې خبرې چېرته دي

زما به چې د شين زړه په ورشو کې په ټوپونو وې
هغه ستا بې باکې غرڅنې خبرې چېرته دي

پو به يې لمبې چې په رګونو د "حسن" کې کړې
ستا د پېغلتوب هغه سپرغۍ خبرې چېرته دي

# کابله څنګه درشم؟

خواږه یاران رانه په وار وار پوښتي
چې کابل جان ته، ته راځې ولې نه؟
د پردیسۍ خزان وهلی روح دې
ددې ګلشن په باد مینځې ولې نه؟

دوی مهربان دي لورېنه لري
زه هم ډېر ستړی یم منزل لټوم
لکه ورک وری له موره ګرځم پسې
د هر یو ښار غېږ کې کابل لټوم

خو ورته وایم چو په خوله به څه کړم
خوږه پښتو به مې کنځله ګڼي
انګرېزي سوټ به اغوستل نه غواړم
خړه جامه به مې شډله ګڼي

رانه هویت به په خپل کور کې پوښتي
په هره لار به قاتلان ولاړ وي
بوی به تري راشي د افغان د وینو
لا به په سرو غوښو لیوان ولاړ وي

ما خو په بل شان وو کابل لیدلی
ها د موسکا او محبت ټاټوبی
خدایږده د چا نظر ایرې ایرې کړو
هاغه د پوهې او اهلیت ټاټوبی

اوس پرې راټول دي د نړۍ ټپوسان
له شمله ورو نه خالي پاتې دی
ها په اسیا کې د بازانو وطن
له سترگورو نه خالي پاتې دی

دې انقلاب ځپلي ښار ته چې ځې
په زورواکۍ به چارواکۍ ته رسې
لاس به دې ښه له خپلواکۍ نه مینځې
ځان به پلورې بیا به څوکۍ ته رسې

داسې بدل شو غل یې مول نه وهي

گرځي په سوټ یا په پوځي جامو کې
اوس تنبستوونکي بند یان غره ته نه ورځي
اوس یې ساتي د وزارت کوټو کې

نه چوپ کېدی شم نه نانداری وهلی
د تجاوز له وکیلانو سره
ساده سړی یم معامله نه شم کړی
د واکدارۍ له مداریانو سره

نو ای ! ملګرو دې مقتل ته نه ځم
چې چېرته کوندۀ چېرته وینم بوره
څوک پر صلیب د جمهوریت ځوړند دي
د چا سر غوڅ دی د جهاد په توره

ډېر معذرت غواړم د رتللی نه شم
دا د وحشت ځنګل زغملی نه شم
د قام د لوټ تماشه نه شم لیدی
لغړ بدن نور ویلولی نه شم

# غزل

نــن بيــا دې چــې پــه شــونډو بهــانې راوړي دي
لـــه ميـــو نـــه دې تشـــې پېمـــانې راوړي دي

پــروا مــه کــړه اشــنا ســتا د وصــال هــرې گــړۍ تــه
پـــه مـــوتې کـــې د زړه مـــې زمـــانې راوړې دي

حضــور تــه دې جانانــه بــې ســينگاره نــه راځــم
هــر تــار کــې د گرېــوان مــې دُردانــې راوړي دي

اوس خــود بــه بــار وو د خــړ ســېلاب پــه اوږو کــډې
نــاوې تـــه مـــو ملگـــرو آشـــيانې راوړي دي

دا زړې مـــې د څړيکـــو دي پـــه وينـــو توکېـــدلي
پــه شــعر کــې مــې چــې کــومې ترانــې راوړي دي

نــور مــه څــاره د حُســن تماشــې تــه د چــا ســترگې
"حســـــن" درتـــه د مينـــې خزانـــې راوړي دي

# غزل

څوک به کړي د عشق کیسه زه به دریاد شم
شي حواس به دې لمبه زه به دریاد شم

په تصویر مې که د وخت دوړې خورې شوې
مخ ته ونیسه آیینه زه به دریاد شم

کوم ماشوم به په خندا محفل ته درشي
درته کړي به اشاره زه به دریاد شم

په ناخوالو به د ورځې ځان غلط کړې
خو خوره چې شي تیاره زه به دریاد شم

مورکۍ به دې پوښتي سبب د اوښکو
ورته پیاز به کړې پلمه زه به دریاد شم

ناڅاپي به له همزولو شې اوچته
لاس به کېږدې په سینه زه به دریاد شم

## غزل

د ځوانۍ په هنګامو کې درته راغلم
لاس دې راکړه په تيارو کې درته راغلم

تاو پټې رانه ګلپاڼې د رخسار کړه
لکه اوښکې په ازغو کې درته راغلم

که هر څو وم بې باکۍ په مخه کړې
د حيا په بدرګو کې درته راغلم

د لندو شونډو په غېږ کې مې درتينګ کړه
د الفت په سرو لمبو کې درته راغلم

تول رازونه مې د زړه پکې ښکاريږي
د سندرو په جامو کې درته راغلم

د سرور په مسرت کې به دې ډوب کړم
د غزل په پيمانو کې درته راغلم

وې: "حسنه" ته او خدای چې څنګه ښکارم
ستا د شعر په آيينو کې درته راغلم

الوتلی يې د غم له ډاره رنګ دی
دا مې وينې دي چې بيا څاڅي له سترګو

دوه خوبونه پکې نه ځايږي ياره
چې مې خوب ستا په راتګ پاڅي له سترګو

تـه چې د دښمن ترجماني کوې
څنګه بيا دعوه د شاعري کوې

اورا او به ياره يو ځای کېږي نه
يا به شاعري يا غلامي کوې

## غزل

څه دې په زړه اوري په ما ګرانه ! راته ووایه
مړې اوښکې دې ځي ولې جانانه ! راته ووایه

راکړه راته زړه زه به حواس په واک کې ورکړمه
ګرانه دا سودا ده که ارزانه ! راته ووایه

څومره مې د زړه غمونه نور خړوبول غواړې
ووایه د سرو اوښکو بارانه ! راته ووایه

زړه زما نور څه وو خو بس کور وو د هر چا د غم
ولې دې کړه دا جونګړه ورانه ! راته ووایه

څوک چې درته وړاندې شي په پټو سترګو شې پسې
څو به لار ته نه ګورې افغانه ! راته ووایه

ډېرې مو تر پښو د وچو هیلو پاڼې خاورې کړې
څه غواړې لا نور د جنګ خزانه ! راته ووایه

نه دې درنوم د روح اوږې په محبت ډېرې
شوې که کله هم یاره ستومانه ! راته ووایه

وژنم به شعور یا به د هر درد هر کلی کوم
کوم یو به "حسنه" وي اسانه ! راته ووایه

✸

بس چاره یې ستا وي بېله زما بېله
چې له غمه شو بې تابه مونږه دواړه

زه لېمې کړم له رڼو اوبو نه تشې
ته جام واړوې د سرو اوبو په غاړه

## غزل

ما له مودو دې کتل لار ته ګلې سترې مهٔ شې
راځه راځه مې د زړه ښار ته ګلې سترې مهٔ شې

شکر د روح بلبل دې راوړه اخېر ځاله ورته
زما خوشبو د غزلزار ته ګلې سترې مهٔ شې

زما پر جنون خو د ځوانۍ خاورې د زړه واوښتې
بيا هم راځې که دې مزار ته ګلې سترې مهٔ شې

بيا په وزرو د تيارو خيال ته راوالوتلې
په نيمو شپو د زړه ازار ته ګلې سترې مهٔ شې

کړې په نغمو کې له ګړنګ د رالوېدلو کيسه
غوږ شه د اوښکو مې ابشار ته ګلې سترې مهٔ شې

غوټې يې خلاصې کړم په غاښ که په بې صبره ګوتو
ښکلا دې راوړه چې ديدار ته ګلې سترې مهٔ شې

بيا دې ځولۍ چې د موسکا ډکه پر شونډو راوړه
څه دې راوړي "حسن" يار ته ګلې سترې مهٔ شې

**یو شعر**

اوس "حســـنه" نـــه منـــې خـــو وخـــت بـــه راشـــي
کـــړي بـــدن بـــه دې قـــانع چـــې لاړې زوړ شـــوې

**یو شعر**

راځـــــه پـــــرې ومینځـــــو د زړونـــــو خیـــــرې
تـــــه دې کـــــوزه زه بـــــه پیالـــــه راواخلـــــم

# غزل

لمر او باران غبرګ په غبرګ کېدل چې ته مې ولیدې
ما چې په خندا کې هم ژړل چې ته مې ولیدې

تش د زړه درزا که وای خو ما به پته کړې وای
تول غړي د تن مې رپېدل چې ته مې ولیدې

ستا نوي انځور ته مې لېمو کې ځای پیدا نه کړ
تول پکې زاړه راغړېدل چې ته مې ولیدې

زړه کې مې چڼلې درته نن ډېرې خبرې وې
خولې ته مې کولپونه ولوېدل چې ته مې ولیدې

څومره مې ژور ژور کاته په نه کتو کې وو
ما چې ستا په لور نه درکتل چې ته مې ولیدې

ډېر مې تصویرونه د "حسن" په تصور کې وو
تول له دې آیینې وکوچېدل چې ته مې ولیدې

# غزل

ته به تو کې کړې یاره کیسې به ترې نه جوړې شي
مه راوړه لاسونه تماشې به ترې نه جوړې شي

نور مې په ایرو کې د حسرت لاسونه مه وهه
سا به پکې پو کړې تلوسې به ترې نه جوړې شي

څه مې د سلگیو په انگار د اوښکو تیل شیندې
پربړده چې ایرې شي سرې لمبې به ترې نه جوړې شي

نن که درته سپکه د ضمیر ملامتیا ښکاري
یاد لره ظالمه ! زولنې به ترې نه جوړې شي

مه مروربړه نور مې ځای نشته په ډک زړه کې
ته به کوې ناز خو فاصلې به ترې نه جوړې شي

مه تکراروه کړي لوظونه پرې "حسنه" بیا
پام کړه وارخطا به شي پلمې به ترې نه جوړې شي

# غزل

تل غبار له ذهنه مينځم چې ځلاند يم
خپلوم نوي فکرونه چې لا تاند يم

بيابان غوندې نصيب مې دی په برخه
چې هر دم د بوړبوکۍ غوندې هڅاند يم

له هر لفظ نه مې خوشبو څاڅي د فکر
لکه ګل په سلو ژبو ژبغړاند يم

که عالم مې کړي چوپړ ارام مې نشته
لکه يم په دې لويۍ کې هم څپاند يم

څه احساس د تنهايۍ به کړم "حسنه"
چې ملګری تل د نوي اند و واند يم

# غزل

مـــه شـــرمېږه يـــاره د جـــذبو خبـــرې پـــاتې دي
پورتـــه کـــړه بانـــه د پښـــتنو خبـــرې پـــاتې دي

نشـــم شـــرنګولی د لنـــدن د مېخـــانو پيـــالې
زمـا خـو پـه غـوږو کـې د بنګـړو خبـرې پـاتې دي

مـــا ورتـــه ځـــولۍ د زړه تنهـــاکې ويـــړې کـــړي دي
ځـــومره دې لا نـــورې د ســـلګو خبـــرې پـــاتې دي

نـه شـم درکتـی نـه غږېـدی شـم خولـه مـې وچـه ده
ډيـــرې مـــې پـــه زړه او پـــه لېمـــو خبـــرې پـــاتې دي

شور به شي غوغا به شي کـه خولـه يـې هـم ګنډلې وي
لا خـــو د "حســـن" د زولنـــو خبـــرې پـــاتې دي

# غزل

غم دې چې نه وي په دردونو کې به څه پاتې شي
زما د زړه په کنډرونو کې به څه پاتې شي

خدای دې لري زمونږ د مينې درد اشنا کنه نو
ستا په غرور زمونږ په زخمونو کې به څه پاتې شي

خپلواکه ژوند مو سرمايه ده که مو دا هم بايلود
زمونږ د تاريخ په کتابونو کې به څه پاتې شي

ژوند مې ستا مينې ګلورين کړو ياره ته چې نه يې
د دې چمن په سرو ګلونو کې به څه پاتې شي

ښه ده ناخوالې دې احساس تخنوي دا که نه وي
"حسنه" ستا په غزلونو کې به څه پاتې شي

# غزل

زمونږ سمندر ژوند باد و باران ته غورځولې غېږ
مونږ لکه ساحل چې هر توپان ته غورځولې غېږ

پوچ ذهن کې زیږي د مذهب او د توکم توپیر
مونږ د ژوند پړاو کې بس انسان ته غورځولې غېږ

سپک مې ګوندې درد لکه تنها کې شي پر سرو اوښکو
تل مې چې اوښکن غوندې دوران ته غورځولې غېږ

پاتې يې د پلونو راته نخښې شي دوی وړاندې ځي
مونږه لکه لاره هر کاروان ته غورځولې غېږ

ژوند د ارزوګانو په تکميل شي بيابان غوندې
ما ځکه تراوسه تش ارمان ته غورځولې غېږ

دا مسلک د مينې هم "حسنه" درجې لري
څوک يې مينه غواړي چا جانان ته غورځولې غېږ

# غزل

برند به ورته ګوري په سلګو خبرې نه کېږي
نه کېږي ظالم ته په جرګو خبرې نه کېږي

راشه په مچکو چې د زړونو غوټې وسپړو
ټول عمر خو یاره په لېمو خبرې نه کېږي

چېرته د غره پښتون وي خو چې کله ښار ته مخه کړي
هېڅ ورسره نور بیا په پښتو خبرې نه کېږي

وار وکړه زاهده ! په قسم چې غږېدې نه اورم
شرنګ کې د پیالو خو د توبو خبرې نه کېږي

راشه چې د لمس په حس کړو ماتې د مودو تندې
هسې هم په یوه شپه کې د شپو خبرې نه کېږي

بیا به د خنجر ژبه راباسي په دې وخت پسې
بل رنګ ورسره د پښتنو خبرې نه کېږي

کېنه چې دمه دې بوږنېدلې تلوسې کړمه
یاره په راتلو کې خو د تلو خبرې نه کېږي

روح ته دې ورزده کړه د خپل وريت احساس د سوز ژبه
تش په خوله "حسنه" د جذبو خبرې نه کېږي

✵

بې له تا يې له بل کار نه لاس اخيستی
لکه نيت چې مسافر وکړي وطن ته

له طبيب نه خلک چا دي منع کړي
په پلمه د ناروغۍ ورشه "حسن" ته

## غزل

اوربل غوندې چې ستا مو پرېشانه زندګي ده
ښکارېږي چې له مونږه پښېمانه زندګي ده

يو پېټۍ د غربت دی چې له وخت سره درنېږي
بل بار مو په اوږو دا سرګردانه زندګي ده

فکرونو کې مې شور دی اندېښنې مې دې کړې ستړې
جانانه بې له تانه ډېره ګرانه زندګي ده

يو پت دی يو پښتون دی بل ازغي د وخت د جبر
بل دشته د غربت ده او ستومانه زندګي ده

درزا زمونږ د زړونو ده ښکالو د وخت، تيرېږي
د اوس لاس کې ګړۍ زمونږ جانانه زندګي ده

بس ستا دا ورانه مينه ده چې اوس هم پکې خاندو
کنه زمونږه نوره څومره ورانه زندګي ده

حېران يم چې به څنګه راکې بيا ساه ننوځي
په مونږ پورې خو دلته هم حېرانه زندګي ده

مونږ خپله په غیرت او په پښتو ده گرانه کړې
چې ټیټ سر پکې گرځې بیا اسانه زندگي ده

د خولې به یوه معافي یې په سلگونو مړي معاف شي
نن بیا د پښتنو څومره ارزانه زندگي ده

ډیوې مې د احساس په مړې کېدو دي ترورږمۍ ده
"حسنه" څومره پاتې دې ناځوانه زندگي ده

یو شعر
په لټون کې د سایل دي سرگردانه
پیرزوینې یې خورې په بحر و بر دي

یو شعر
په بیدیا د زړه مې ویړي کړي غزلې
قافله د غزالانو پرې تیرېږي

## غزل

پیدا مې سترې مینې کړله لار په آیینه کې
ښکاره یې شو انځور ستا د رخسار په آیینه کې

امید هم رانه لاړو بس شو پاتې ستا نظر ته
یو زه او بل مې درد د انتظار په آیینه کې

تو پان د پېغلتوب چې پکې څنډ وهلې څڼې
په هر طرف یې خور کړ انتشار په آیینه کې

بدل که مې یو غم شو په غمونو زړه چې مات شو
نو څه خو تصویرونه شول کتار په آیینه کې

په ډک محفل کې څه ګورې په ځیر ځیر زما مخ ته
بربنډ به دې د مینې شي اسرار په آیینه کې

چې سره شوه له حیا ما هم کړې برندې سترګې ټیټې
نقاش شوم د رنګونو د اظهار په آیینه کې

ښکلا چې پکې ګورې او پردېس "حسن" وریاد شي
په سوړ اسویلي جوړ کاندي غبار په آیینه کې

پـر خپلوانـو چـې هـم پښتـی شـي نـور څـه وي
خـو بـس ووځـي څـو پـوکي د سـا لـه مـړه نـه

د حُبـاب غونـدې بـه وچـوې "حسـنه"
د لـويي هـوس دې وباسـه لـه زړه نـه

لـږ مـو پرېـږده چـې خپـل غـم پکـې راټـول کـړو
زمـونږ سـترګو دي د نـم لمنـې ويـړي

سـتا د ظلـم روايـات کـه لا ژونـدي دي
ورتـه مـونږ هـم دي د زغـم لمنـې ويـړي

## غزل

زړه ته مې راشي پخوانۍ خبرې
چې چېرته واورم د مستۍ خبرې

هم به کړي تا هم به کړي ما لوخړه
بس د تعصب به کړو سپرغۍ خبرې

ته دې فارسي زه به پښتو وايمه
خو کړو به ياره افغانۍ خبرې

په نيمه شپه دې ورته وروستلم
تا چې ماښام کړې د سپوږمۍ خبرې

ترېنه ګلونه مې پر زړه غوړېږي
په ناز چې کړې راته غوټۍ خبرې

د شاعرۍ کافر کمال ته ګوره
له خولې مې باسي د ځوانۍ خبرې

هسې بړاس باسم د زړه "حسنه"
اوري مې څوک؟ دا لېونۍ خبرې

جـــوړه شـــوې لــــه ســــلګیو او غوغـــا ده
ناآشـــنا چـــې ورســــره ټولـــــه دنیــــا ده

زړه د مــور غــوارې هــر څــوک نــه پــرې پــوهېږي
زمــــونږ پـــر خولـــه بانــــدې لا ژبـــه د ژړا ده

لـــه ولـــس نـــه پـــه لـــوړ فکـــر راتـــوکېږي
خـــو پـــر مـــونږ راتپـــل شـــوي رهبـــران دي

دا هـــــم جبــــر د حـــــالاتو دی "حســــنه"
دا پـــه فکـــر ماشـــومان چـــې مـــو مشـــران دي

# غزل

دا کسي او بانه دې کړي خبرې په لېمو کې
که توري توتکۍ وهي وزرې په لېمو کې

هر څو که مو سا تنگه وه د ساندو په موسم کې
پاللي مو په سرو اوښکو سندرې په لېمو کې

نظر به مې پروا د تغافل د غشو څه کړي؟
اغوستې يې د اوښکو چې دي زغرې په لېمو کې

زرې زرې مو کړلې مرغلرې په لېمو کې
چې پېيل مو د مينې کړې ډغرې په لېمو کې

نظر چې مې ډاډه په کړېلېچونو کې د ناز ځي
د اوښکو ورسره دي رومي لښکرې په لېمو کې

له څه نه به دې حُسن پنځولې دومره لوړې
که نه واى د "حسن" د عشق ژورې په لېمو کې

# غزل

مجبور يم له فطرته د ذلت په لاره نه ځم
پښتون يم له پښتو د بغاوت په لاره نه ځم

نري د صراط پُل شو د الفت په لاره نه ځم
جانانه ستا د حُسن د قيامت په لاره نه ځم

چې تاته شي محل او په ما رنګ کړي د بوالونه
اشنا د رسره نور د دې اخوت په لاره نه ځم

ما پريږده، ته زبيښه کله شراب او کله ويني
په نوم د تمدن د دې د وحشت په لاره نه ځم

سرخېل که شوم د مينې نو ته ولې برند راګورې
جنت ته خو به شيخه د نفرت په لاره نه ځم

چې بوخت وم تل "حسنه" د خپل ځان په پېژندنه
اوس هم هغه ملنګ يم د شهرت په لاره نه ځم

# غزل

راشــــه واوره د جـــــرس فغـــــان د اوښـــــکو
درتـــه رامـــې غلـــی اشـــنا کـــاروان د اوښـــکو

لا د زړه پـــــه ســـــترګو چـــا نـــــه دی لوســـــتلی
زمـــا د مـــخ پـــه زېـــړ کاغـــذ دیـــوان د اوښـــکو

وې: دا اوښـــکې مرغلـــرې او ســـتا غـــتې زړه؟
مـا وې: پـروت دی پـه دې غـره کـې کـان د اوښـکو

د هـــر ځـــاځکي پـــه آیینـــه کـــې یـــې انځـــور یـــې
راشــــه وګــــوره زمــــا جهــــان د اوښــــکو

ښــه راغلاســت چــې ســتا د غــم ورنــه هېــر نشــي
پـــه خنـــدا کـــې هـــم کـــوم ګـــردان د اوښـــکو

کاشــکې ســتا څرېکـــو تـــه بـــل څـــه راســـره وای
درتـــه رامـــې وور اشـــنا درمـــان د اوښـــکو

د هــــر زړه پــــه دروازه کــــې مــــې نــــارې کــــړې
یـــو مـــې هـــم نـــه کـــړ پیـــدا مېزبـــان د اوښـــکو

پرې کرم د چا یادونه ورته ژاړم
غواړي للمه مې د زړه باران د اوښکو

په بې درده اشنایانو کې اوسېږي
چې لېمې شوې د "حسن" زندان د اوښکو

✵

ځان کره عادت له ښویېدلو سره
کله به بېرته ابتدا ته راځې

ژوند کله وي تګ په شګلنه لاره
په مخ چې درومې لږ به شاته راځې

# غزل

تـــه وا د میـــو پـــه پیـــالو کـــې موســـېدل رنګونـــه
مـــا چـــې پـــه ګوتـــو ســـتا د شـــونډو تخنـــول رنګونـــه

زمـــا پـــه تـــګ دې چـــې تـــر ډېـــره ښـــورول لاســـونه
د بـــوډۍ ټـــال شـــوې پـــه هـــوا دې زنګـــول رنګونـــه

پکـــې نـــن بیـــا شـــفق خـــوره وه د افـــق لمنـــه
ستـــا پـــه ګلشـــن کـــې د رخســـار یـــې ټولـــول رنګونـــه

مصـــور خیـــال مـــې جـــوړوۀ ســـتا د یـــادونو تصـــویر
د زړه زخمونـــو مـــې لـــه پاســـه پـــرې شـــیندل رنګونـــه

کلـــه خـــورې کلـــه بـــه یـــې ټـــولې کـــړې پـــه سپین مـــخ څڅې
سترګو کـــه جنـــګ کـــړو خـــو لاســـونو لوبـــول رنګونـــه

هغـــه شـــیندل پـــرې د ګلونـــو کـــړمـــه څنګـــه انځـــور
بـــس پـــه رنګونـــو کـــې "حســـنه" لمبېـــدل رنګونـــه

## غزل

يو لمس ته د نظر مې ضرورت لرې کنه
په مړو سترګو کې اوس هم شرارت لرې کنه

راوړي مې مچکو ته پيالو پسې پيالې دي
په تنګه خوله کې دومره سخاوت لرې کنه

تسپې خو درنه شېخه برېتور وشوکولې
اوس بل کوم يو معيار د عبادت لرې کنه

مونږ توی شو ځاځکي ځاځکي ته له ډک زړه نه اشنا
بيا هم لکه ورېږځې شکايت لرې کنه

وربمه يې کړه راچف زلفې دې څنډ وهه په ناز
څه دم د ناروغانو د الفت لرې کنه

په اوښکو که د زړه د غم وينځل شو ناروا
"حسنه" د شرابو اجازت لرې کنه

# غزل

په لار کې به دې تم کړمه شرمېږې خو به نه
لمن به دې راونیسم ډارېږې خو به نه

نور لپه کې د زړه نشم د راز سکروټې وړی
ستا نوم که په خوله راغلی منکرېږې خو به نه

انګار له ډېرې مینې شه په پټه خوله مې سوځه
رسوا مې نه کړې کلی دی لوګېږې خو به نه

لمبې مې د جذبو ځغلي رګونو کې ډارېږم
سپینچکه لکه کوچ یې ویلې کېږې خو به نه

دې زړه کې مې چې ګرځې کنه غم ته ورکړه لاس
دا ښار دی ګڼه ګوڼه کې ورکېږې خو به نه

بل جام چې یې د شونډو راته ونیو راپه غوږ شوه
وې: لار کې چې "حسنه" ځې زنګېږې خو به نه

## غزل

تا چې په ما باندې رڼا خوره کړه
لکه آيينه ما دې ښکلا خوره کړه

شعر مې د درد ژبه احساس ته ورکړه
لکه شپېلۍ چې مې غوغا خوره کړه

هسې مو يو بل ته ترشا وکتل
خلکو زمونږ د عشق افوا خوره کړه

څو مره مهين مې شول شــل شعرونه
ستا چې اروا پکې معنا خوره کړه

جنون پېرزو کړ زمانې را باندې
ستا محبت پکې سودا خوره کړه

لکه رڼا او اور سرحد نه لرو
په مونږ کې عشق يوه اروا خوره کړه

پکې پرتو او ښکو امين ويلو
"حسن" چې لپه کې دعا خوره کړه

دلته که کامیاب سیاست کول غواړې
تل به د غریب ولس ارزو وژنې

هسې څوک دوستي درسره نه پالي
یا به پښتانه یا به پښتو وژنې

پرېږده چې اوري مې باران له سترګو
ستا چې بېدیا د زړګي جل وهلې

یو څو سلګۍ مې تر تا راوړې اشنا
نوره دنیا رانه ازل وهلې

# د څړیکو په آیینو کې

ته پیدا د ژوند په ورځ یې
لږ ترې لرې ځان کړې غلی
ته وا ډک دې دي لاسونه
پټاسو نه چې ژوند ځان ته
د ماشوم په څېر دربولې
چې د سترګي سا په پلونو
په خندا هره ګړۍ د تا په لوري
درخوځېږي، درلندېږي
ته پابند کله د وخت یې
نه هویت له چا نه پوښتې
نه دې څرک نه دې درک وي
خو ناځا په کرغېړن مخ
راڅرګند لکه ښامار کړې
په یو چا باندې ورټوپ کړې
لا دې ژوند نه وي لوټلی
لکه برق زهر خواره کړې
په رګونو د سلګونو کې د نورو
په یو وار دې کاشکې یو انسان وژلی
نه دې شکل څوک لیدی شي
نه دې تن شي لمس کولای
نه ښکالو دې د قدم څوک اوریدی شي

بیا هم یو جهان د حُسن
د امید او رڼاګانو
د خوبونو خنداګانو
د حسرت او هوسونو
د عدم په دریاب ډوب کړې
تش یې پاتې شي ژوندو ته تصویرونه
د زخمي زړونو د څړیکو په آیینو کې
کاشکې دا پاتې داغونه
تصویرونه او یادونه
لولپه دې ورسره وای
چې یې مخ ته کونډه و بورو
مرګه نه وای بلې کړې
هر ماښام ډیوې د اوښکو.

✵ د خپل ګران ۱۱ کلن خوریی )عثمان( د مرګ پر مهال

# غزل

ټولې خواوې د ژوندون څومره سپېرې دي
بیا هم هر سړي تاو کړي ترې پېرې دي

په دې نه یو چې څراغ دی او که شمه
بس رڼا ته مو خورې خپلې اېرې دي

دا ستا لویه کمزوري مظلومه دا ده
چې پر شونډو دې تراوسه لا ښېرې دي

که شکلونه دې د ظلم درنه هېر وي
زما د اوښکو په آیینو کې یې څېرې دي

که د غم د سمندر څپو کړې ستړی
پکې زما ټولې غزلې جزېرې دي

ګوري تل خپل ډېرین زړه ته "حسنه"
چې چړې یې د نظر داسې تېرې دي

# غزل

له لمبو راټوکېدله، له سره اور خوره وره شوه
د لوګي غونډې مې مینه، لور په لور خوره وره شوه

دا به ناسته وي چې چېرته، لکه ګل د رنګ جامو کې
زما د عشق لوڅه خوشبو خو لکه شور خوره وره شوه

اوس منم دې اسویلیه! زما دوړه د غمونو
په آیینه یې د مغرور زړه ستا په زور خوره وره شوه

خبر لوڅې خاموشۍ مې څه موسکا به نڅوله
اوازه دې د راتلو چې کور په کور خوره وره شوه

په درونډ پنډ د پېغلتوب یې د حیا اوږې درنې شوې
چې دا ستا غونډې "حسنه" په مېخور خوره وره شوه

## غزل

وارخطا شوې د لېمو په مشغولا کې
څه به حال وي؟ ستا د زړونو په درزا کې

کله کله یې محفل ته دا سې ورشم
لکه اوښکې د چا راشي په خندا کې

رنګ او نور خو سرنامې ددې کتاب دي
د ښکلا تفسیر یې پروت دی په اروا کې

له ژړا وروسته سلګۍ مې نورې څه وې؟
خو بس درد رخصت اخیست په لنډه سا کې

خیر که ستا له زړه چاودون نه راپیدا شوم
لکه بوی هسې دې خور شومه په خوا کې

ټوله ورځ زبېښنم شراب په شپه کې شونډې
لاس مې شپه ورځ وي په غاړه د مینا کې

دا د زړه سودا "حسنه" څه کم سود دی؟
نور څه غواړې؟ د دنیا په دې بیدیا کې

په خالي زړه او پړسېدلي خېټه
هومره يې پوه چې چل د غلا ثنګه وي

په معاش بد معاشه تاته ثه پته ده
چې د نهر ماشوم ژړا ثنګه وي

يمه شاعر هنر د مينې لرم
په نا آشنا نظر آشنا به دې کړم

اوس مې خطا په تيټو سترګو نشې
وار به دې راشي وار خطا به دې کړم

## غزل

ما لکه سره اوسپنه لمبو ته لپه ونیوه
اوس مې چې د سرو اوښکو اوبو ته لپه ونیوه

بېل د هر سړي وو د دنیا په غمکده کې ذوق
چا د سترګو اوښکو چا پیالو ته لپه ونیوه

خود به مې خُمار د بې باکۍ ناځي په سترګو کې
ما د وخت د څړیکو پېمانو ته لپه ونیوه

بس په دې تو پیر لوړو ته لاړو له ژورو نه
دې زما الفت ما یې ارزو ته لپه ونیوه

چا د سوکالۍ له میو ډک ځان ته خمونه کړل
چا یې د مارغه غونډې قطرو ته لپه ونیوه

نورو تنده غرو سرابونو پسې منډې کړې
مونږ د ژوند په دښته کې پښتو ته لپه ونیوه

پوه نه شوه اوبه یې له منګي پکې راتویې کړې
ما یې چې د سرو سترګو کاسو ته لپه ونیوه

چا راتوله کړې د ګلمخيو اواره مينه؟
تا ځنګه "حسنه" دې خوشبو ته لپه ونيوه

✻

پر مختګ يې لا د خېټې هوس زيات کړ
هر نظام يې د ستم نوی هنر دی

هسې شکل او انداز يې بدل شوی
د بشر سره جوړه راغلی شر دی

## غزل

راشـــه حـــال د زړه د پرهرونـــو درتـــه ووايـــم
پـــټ بـــه يـــې پـــه ژبـــه د دردونـــو درتـــه ووايـــم

تـا کـه حـال د زړه رانـه پوښـتی او خولـه مـې وچـه وه
څـه خـو بـه د خـوږ زړه پـه ټوپونـو درتـه ووايـم

څـومره يـې چـې پـالم هـومره نـورې غزونـې کـړي
کـوم سـوی داسـتان د ارمـانونو درتـه ووايـم

تـا خـو د ادا پـه ژبـه خپـل عشـق ژبغړانـده کـړ
زه بـه خپـل د شـعر پـه تصـويرونو درتـه ووايـم

وې پکـې تصـوير د پرهرونـو د هـر چـا د زړه
څـه بـه دې "حسـنه" د شـعرونو درتـه ووايـم

## غزل

ستـــرگې دې بيـــا راتـــه هېنـــدارې نـــه شـــوې
پېغلـــې جـــذبې پکـــې ســـينګارې نـــه شـــوې

پـــــه پخـــــواني نظـــــر دې ونـــــه کتـــــل
لـــه زړه نـــه زړه تـــه جـــوړې لارې نـــه شـــوې

ستاســـې هـــم ختـــم تهمتونـــه، نـــه شـــول
زمـــونږ لمنـــې هـــم داغـــدارې نـــه شـــوې

يـــــواځې شـــعر او طبابـــت خـــو نـــه دی
نـــورې هـــم پـــاتې رانـــه چـــارې نـــه شـــوې

زړه مـــې هـــر څـــو کـــه کـــړو بـــې باکـــه مينـــې
پښـــتنې ســـترګې مـــې سرشـــارې نـــه شـــوې

لاړې واپـــس ســـتا پـــه بـــې غـــوره کتـــو
اوښـــکې مـــې ســـترګو کـــې ايســـارې نـــه شـــوې

ټـــولې خبـــرې مـــې پـــه زړه پـــاتې شـــوې
شـــونډې مچکـــو نـــه وزګـــارې نـــه شـــوې

لا يې زانگو کې زنگوم د مراندو
د زړگي ثړيکې مې کرارې نه شوې

نن يې بې باکه ورکتلي نه دي
چې د "حسن" جذبې خُمارې نه شوې

گوره مې سترگو ته هم کله
هره خبره خو پر خوله نه کېږي

تش د "حسن" په وارخطا لفظونو
تل د مينې خو د زړه نه کېږي

# غزل

اور راکې مې کړئ کور د شر خونه یم
د چا وطن یمه مجمر خونه یم

لا خو مې هسکه ده جنډه د شملې
نه ریه یم لاس په تټر خونه یم

غمه اخیر خو به دې کړمه چاره
ترڅو به ژاړم سمندر خونه یم

هو ! له غربت به ترهېدلی ښکارم
خو ستمګره ترهګر خونه یم

درد خو به ژاړمه ظالمه د ځان
اخیر انسان یمه کمر خونه یم

تل کړم د زړه د تل وینا "حسنه"
شاعر سړی یم څه نوکر خونه یم

## غزل

څړیکـې مـې زخـم کـې ټـومبلې چاتـه نـه ښـکارېدم
زړه مـــې پـــه وینـــو لمبـــولې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

خور به په درد مې شو حجاب د دروغجنې موسکا
مـا کـه پـه زړه چـړې خـوړلې چاتـه نـه ښـکارېدم

ستا خو پر مخ اوښکې راتلې ما د تنها کو غوندې
د زړه پـــه غـــولي گرځـــولې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

تـش پـه یـادونو مـې کلونـه پـه څـادر د شـپو کـې
هیلـــې د وصـــل غولـــولې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

چې لړ به هم شومه وزگار رېباري څړیکې مې ستا
مرانـــدو د زړه کـــې زنگـــولې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

عمـر مـې ټـول د سـردمهرۍ تـر واورو لانـدې د چـا
کرلـــې هیلـــې کـــه پـــاللې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

دنیـــا ویـــده وه کـــرۍ شـــپه مـــا د ارمـــان پـــه څلـــي
شـــمې د اوښـــکو بلـــولې چاتـــه نـــه ښـــکارېدم

د غريبۍ په گرد کې پټ وم کنه ما "حسنه"
جذبې هر چاته غوړولې چاته نه ښکارېدم

✵

پرې د څو غټانو گرم دي جېبونه
ددې چم په وگړو اور بلېږي

چې محل ته يې لمبې ونه رسېږي
تر هغه به په جونگړو اور بلېږي

## د شعر اروا

زه کړم قلم د زړه له وینو نه ډک
د پرهرونو د کتاب پر پاڼه
پېیم په شعر کې د دردونو توري
هاغه پرهر ته ورکومه ژبه
چې یې وي ګونګې ربړېدلې څړیکې
په خوړین ټټر کې له مودو ایسارې
جوړ کړم د شعر له هر یو توري کنډول
راټولوم پکې خیرات د اوښکو
له ډبرینو زړونو تراشم آیینې
ورته ښکاره چې شي تخلیق د ښکلا
چې پکې ووینې تصویر د مولا
ګرځم د زړونو په آیینو کې کرم
د محبت د ملکوت سندرې
چې کړي سیقل د ترنم په ګوتو
ددې هېندارو د نفرت زنګونه
د اسې وزرې په شعور کې ټومبم
چې له حواسو نه اوچت والوځي
په خپل الوت کې کاینات راټول کړي
د کوه طور د نور زکات راټول کړي

شته چې زما په شاعرۍ پوهېږي
زما په دې بنده غوټۍ پوهېږي
د زړه په سترګو يې رنګونو ويني
د دې لاله د زړه داغونه ويني
خو ځينې شته چې مې د شعر هېنداره
سترګو ته ونيسي نظر يې يوسي
لېې د ذهن يې کوچنۍ وي دومره
چې له دريابه مې د شعر د اروا
راوخلي دا يو څو د تورو څاڅکي
چې ته شاعر يې دا منو درسره
خو راته وايه چې مَبن په چا يې؟

# غزل

په خولـو د سـوز و شـرم لمبېدلـه ورو پـه ورو بيـا
تـــر ســـهاره لکـــه شـــمه بلېدلـــه ورو پـــه ورو بيـــا

چـې يـې لمـر پـه کنګلونـو د تـودې مينـې راوخـوت
يـوه څړيکـه مـې پـه زړه کـې بهېدلـه ورو پـه ورو بيـا

مـا هېنـدارې د نظـر کـې راپيـدا نـوي جـوهر کـړل
سـتا د حسـن حېرانـي کـه زياتېدلـه ورو پـه ورو بيـا

زه فنـا سـتا پـه وجـود کـې لکـه سـتورى د سـحر شـوم
چـې رڼـا لکـه د لمـر دې خورېدلـه ورو پـه ورو بيـا

الـوتلې مـې پـه روح کـې څـه وږمـې وږمـې خبـرې
چې غوټۍ خوله يې "حسنه" غوړېدله ورو پـه ورو بيا

# پړک

ژوندون څه وو؟
د فطرت په چاودو شونډو
د مرموزې خندا پړک وو
په غریب غوندې ماښام کې
په الوت لکه شرر وو

یا ځلا وه د سرو زرو
د شفق په سره امېل کې
یا کیسه د زړه چاودون وه
د غوټۍ په سره کوگل کې

یا څو څاڅکي وو د پرخې

پېغلوټو د ګلپاڼو
په ناز څرک ته وو نیولي
د ورغویو په پیالو کې

سحر واړول په غاړه
د بهار په مېخانه کې
د زرین لمر په پیاله کې

نور يې له خپلې حافظې وباسه
د ځينو خلکو رقابت درسره

نن که حسد درسره کړي "حسنه"
خير دی اخير به شي عادت درسره

## غزل

دومره مې ژړ د زړه درزا ولې شوې
راسره مل لکه سودا ولې شوې

په نه راتلو دې خطا کار ګناه
چې لاس مې دروړ وار خطا ولې شوې

دا خو هېنداري وې زما د اوښکو
پکې ښکاره څېرې د تا ولې شوې

د تندر پړک دې کړو رسوا اسمانه
دومره بخيل په مونږ بېګاه ولې شوې

لا مې حواسو کې نغښتلی نه وې
زړه کې مې خور لکه اروا ولې شوې

راپسې بلې دې وې شمې اوښکې
چې درته راغلم په ژړا ولې شوې

په دې خبره مروره وې ته
په دې خبره راپخلا ولې شوې

ستا په ګناه مې شپېلوي هډوکي
پښتونولۍ! راته بلا ولې شوې

دا خو يو بيت وو د "حسن" د غزل
په نه خبره مې اشنا ولې شوې

✵

زورور برخه د بل لکه حېوان خوري
انسانان لا يو او بل لکه کبان خوري

بې دانې چې لکه پلونه شي د ژرندې
بيا تهذيب کړي تماشه انسان، انسان خوري

## غزل

پرهـــر وطـــن کـــې د دردونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم
تـــول لالـــه زار دی د داغونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم

پـــه پښـــتو ژبـــه خـــو وینـــا بلـــه گنـــاه ده دلتـــه
زه پـــه شـــرنگا د زنځیرونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم

څنگـه یـې وکـړم او لـه چـا نـه یـې تعبیـر وپوښـتم
هاغـــه د زړونـــو د ټوپونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم

دا د ټیټ سرو پـه نظـام کـې پـرې څـوک څـه پـوهېږي
پـــه دار د ځوړنـــدو ســـرونو کیســـه چاتـــه وکـــړم

ســـتا د یـادونو پـه خوشـبو د پـردېس شـپې تېـروم
پـــه دې خـــزان کـــې د گلونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم

د شـوکمارانو پـه ټولۍ کـې رانـه ورک شـو څـاروان
د لـــوټ کـــاروان د جرســـونو کیســـه چاتـــه وکـــړم

دلتـــه زمـــا او ســـتا زگېـــروي تـــر غـــوږو چېرتـــه رســـي
وطنـــه ! ســـتا د پرهرونـــو کیســـه چاتـــه وکـــړم

سپېره نصيب مې د بې دردو په مالت ګرځوي
د درد په ژبه د زخمونو کيسه چاته وکړم

څوک دي "حسنه" اسويلې باد چې زغملی نشي
ستا د سينې د توپانونو کيسه چاته وکړم

يو شعر

نوره بس کړه شاعري څه ترې نه غواړې
اشنايان دې ټول "حسنه" رقيبان کړل

# غزل

ټوله شپه دې انتظار وم ته رانه غلې
پروت په لار کې دې غبار وم ته رانه غلې

ما رسی ته ستا د لېچو غاړه راوړه
ستا د مينې سزاوار وم ته رانه غلې

ما وې: ته به مې په غېږ کې ترې راکوز کړې
څوړند ستا د خيال په دار وم ته رانه غلې

زلميتوب مې کړې بيا وې غزونې
نن چې بيا زه ګناهګار وم ته رانه غلې

د لومړي ديدن په ځای کې درته ناست وم
بله شمه په مزار وم ته رانه غلې

په پرهر د انتظار کې چورلېدمه
په اوږو د څړيکو بار وم ته رانه غلې

د "حسن" د اسمانڅک تخيل ناوې
نن چې ټول خمار خمار وم ته رانه غلې

دا مـــې آیینـــې تـــه د اوبـــو وکتـــل؟
چـــې پـــه لیـــدو یـــې ګېنـــۍ واخیســـتم

ربـــیا ده مینـــه خـــوی د میـــو لـــري
زه چـــې پـــه تېـــر عمـــر مســـتۍ واخیســـتم

پـــه لحـــد کـــې یـــې پراتـــه مـــړي هـــم اوري
خـــو بـــس ســـتا تـــر اســـتانې نـــه دررســـېږي

د بګـــرام لـــه جېلخـــانې وتلـــې کـــوکې
ځنګـــه ســـتا تـــر ګلخـــانې نـــه دررســـېږي

## غزل

خاموشي يې لا په شونډو انتظار کړ
شور د مينې يې په سترګو کې اظهار کړ

مونږ رندان هم زړونه وينځو په شرابو
شيخ که لرې په اودس د مخ غبار کړ

نه مو ځان او نه مو خدای ته وخت پيدا کړ
بس ټول عمر مو غټانو ته بيګار کړ

په وعده مې د يوه مرګ سره وفا کړه
چې د هر ساعت له مرګه مې انکار کړ

ورانوي اوس پرې د خپلو پلونو نخښې
دې مقام ته يې چې تګ په کومه لار کړ

څه به ستا له دې مالګين چلند نه ژاړي
چې ازل "حسن" ته ژوند لکه انګار کړ

# غزل

بیـا یـې پـه سـرو شـونډو د الفـت لفظونـه، نـه راځـي
رایـې شي پـه زړه خـو یـې پـه خولـه لوظونـه، نـه راځـي

شاید چـې مـو تـگ د ژونـد لـه پښـو نـه غورځـولي وي
اوس چـې مـې حجـرو تـه د لېمـو خوبونـه، نـه راځـي

ځنگـه ورتـه ورشـي تـه چـې وایـې تـرې نـه ځـار بـه شم
زړه تـــه خـــو بـــې ســـته پښـــتانه غمونـــه، نـــه راځـــي

مـه لېـږه شـاعره هـر وخـت سـترې اند ېښـنـې پسـې
گـــوره پـــه بلنـــه لکـــه خـــوب شـــعرونه، نـــه راځـــي

زمـا پـه سـوي سـوي اسـوېلو یـې جـوړ سـپېره شـو مـخ
هســـې خـــو بـــې بـــاده پـــه آیینـــو گردونـــه، نـــه راځـــي

شک مې شو پیدا پـه حقیقت ستاسې د عشـق بانـدې
اوس چـې دې "حســنه" پـه اشـنا شـکونه، نـه راځـي

# غزل

خلـک شـول هوښـیار دوی د دنیـا لمـن نیـولې ده
زه شـوم بوړبـوکی مـا د بیـدیا لمـن نیـولې ده

پورتـه دې کـړه سـر درنـه یتـیم تـه درویـزه غـواړي
مشـره ! د شـهید بابـا اروا لمـن نیـولې ده

پـوه شـوم طریقـت د غلامـی هـم سلسـلې لـري
ده د خپـل بـادار دوی د پاچـا لمـن نیـولې ده

دا چې زمونږ د وینو سیند کې ځي د خپل هوس په لور
ډوب بـه شـي دې خلکـو د هـوا لمـن نیـولې ده

څه مې وېروي اوس دا که جګ نه وي نو غوښنه دی
مـا خـو دې خپـل سـر تـه لا پخـوا لمـن نیـولې ده

مـه سـپړه "حسـنه" د پښـتون د جهالـت تـاریخ
اوس هـم چـا د پیـر چـا د مـلا لمـن نیـولې ده

## غزل

ورې تـــرې نـــه قـــرار ورتـــه صـــنم لمنـــه ویـــړه ده
زړه مـــې ورتـــه بیـــا د خپـــل حـــرم لمنـــه ویـــړه ده

مونږ نه خو د ژوند لاره کې لوټ شوې خندنۍ شېبې
غـــواړې رانـــه څـــه چـــې راتـــه غـــم لمنـــه ویـــړه ده

تـه یـې چې لا مـوړ لکـه وریږځـې پـه ژړا نـه یـې
زه یـم چـې مـې اوس هـم لکـه یـم لمنـه ویـړه ده

مـونږ خـو یـې ستم زغمـل پـه خپله لـوی ستم ګڼـو
ځینـــو لا ظـــالم تـــه د کـــرم لمنـــه ویـــړه ده

نـه کـړې شـور جانانـه خوبـولې ارمانونـه مـې
بیـا مـې پـرې د سـرو اوښـکو د نـم لمنـه ویـړه ده

شـپه ده پرده ښـې ده خـو ګلرنګـه تصـور کـې سـتا
سـترګو مـې سـتا رنـګ تـه د شـبنم لمنـه ویـړه ده

پرېـږده کـه دې حُسـن د غـرور لـه خویـه نـه اوړې
نیـــاز مـــې د الفـــت ورتـــه د زغـــم لمنـــه ویـــړه ده

څه وکړو "حسنه" که رااوري د ستم ږلۍ
مونږ هم ورته لاندې د قلم لمنه ویړه ده

✵

ویړیې کړ شال د پېغلوب راباندې
چې د ځوانۍ د خوب زانګو کې زانګم

جوړیې کړم ځوندۍ د الفت په ګوتو
کله رباب کله تسپو کې زانګم

# غزل

نور مه پوښته په منده تېرې حالونه د زړګي
لږ پرې يې پرېږده چې کم يې شي تړپونه د زړګي

حېران يم چې به څه کړي په اوږو مې پرښتې
شمېري به مې ګناه که پرهرونه د زړګي

راځه ورته ډاډه که هر څو وينې پکې ډنډ دي
ولاړ مې دي لا يار د پوالونه د زړګي

بس بېدم يې په تنها کو د تودو وينو نکريزې
پرد بس يم چاته وسپړم زخمونه د زړګي

چې نه دې ګرېوان چاک دی نه دې سر ببر دی
څوک څه وينې "حسنه" ستا چاکونه د زړګي

# غزل

زړه کې مې مېلمه د عشق د غم شه چېرته ځې رانه
څو شېبې په دې حجره کې تم شه چېرته ځې رانه

ستا چې د احساس په وچ ډګر څړيکې راوتو کې
زما د غريو نيوليو سترګو نم شه چېرته ځې رانه

پورته ترې خپسې کړه په ساز د مستانه خندا
مراندو ته د زړه مې زير و بم شه چېرته ځې رانه

نشم تلی بې څړيکو د دې ژوند په پرهرونو کې
وړاندې لکه غم مې يو قدم شه چېرته ځې رانه

راشه لکه پرخه يې په وړانګو کې درتولې کړه
نن مې د ويرژلو اوښکو زغم شه چېرته ځې رانه

ډېرې به لا ليکو د "حسن" د زړه چاودون کيسې
زه به شم هنر ته مې قلم شه چېرته ځې رانه

## غزل

بیا د اشنا مې مېلمنې دي سترګې
نن مې چې بیا بلې ډېوې دي سترګې

ما خېژولې یې اسمان د عشق ته
لکه سپوږمۍ چې درپسې دي سترګې

څنګه راتول دې پکې حُسن کړمه
دې سمندر ته خو کاسې دي سترګې

راشه چې ډوبه دې تقوا کړم پکې
په مستانه خُمار مې سرې دي سترګې

ته مو پر اوښکو تبه خړې نه شې
زمونږ په غمونو کې پخې دي سترګې

په دې شلېدلو جامو مه تېر وځه
یو به غریب خو مو مړې دي سترګې

"حسنه" دومره وچکالي خو نه ده
شونډې که وچې دي لندې دي سترګې

## یو شعر

شعر چې شي ریښتینی بې هنره شي
زه په دې هنر پکې ربښتیا وایم

## پښتونه !

یوه له پاسه پرې شیندل لار کې ګلونه
دتا د مرګ ته چې راتلل پردي پوځونه

بل وهل چې په څپلیو درته ټول ژوند
وهل یې ستا په سر هاغه مېخونه

# غزل

حضور ته دې په رپ کې د بڼو ځم و راځم
یو خوب د سودایي شم په شپېبو ځم و راځم

هر څو مې که په برخه څو ګړۍ یې وي په غېږ کې
ساحل ته دې د حُسن په څپو ځم و راځم

راستون له بې دردۍ دې شم چې درمې ولې غریو
بس اوښکه پښتنه شم په لېمو ځم و راځم

بدل که مې وي شکل خو همېش دغې دنیا ته
هم دې فطرت سره له زمانو ځم و راځم

مشعل چې د تاریخ مې دی په لاس کې نن نیولی
سبا ته د پرون په پلوشو ځم و راځم

وهمه که "حسنه" له دنیا سره ډغرې
یو چاته په جرګو خو د سلګو ځم و راځم

## غزل

شرم وي خولې وي لېوني زړونه صبرېږي نه
عشق د شمعې اور شي په اوبو باندې مړ کېږي نه

لاس چې پر خوله آيينه راتېر شي لاځلا وکړي
چا وی: چې پر عشق يې د حيا پرده ماتېږي نه

ستا د خولې ياري لکه اوبه په ګرمي والوځي
زما عشق د غوړو غوندې خوټېږي خو وچېږي نه

پاتې وي پښتون که مې هر څومره شي رنها فکر
ځانګې غزونې کړي له بوټي نه بېلېږي نه

څه وکړم که شوې رانه پرې ستا لېمې لندې غوندې
بحر د جذبو مې د زړه لپه کې ځايېږي نه

ډېر مو که درانه غرونه د غم په سر اخيستي دي
خوی لري د وربځو ځي روان دي پاتې کېږي نه

پرېږده طبابت د کوم ملنګ لمنه ونيسه
درد د عشق "حسنه" په دوا باندې رغېږي نه

✵

لکه مارغان او لکه مستې څپې
زمونږ نشیب وي د فراز لپاره

زمونږ سرونه چاته خم مه ګڼه
مونږ یې چې ټیټ کړو د پرواز لپاره

✵

را پیدا که زړه چاودون ستا
زما وجود لکه خوشبو کړ

ستا پیغام یې په فضا کې
هرې خوا ته په څپو کړ

# غزل

کـــه مــــې زېــــړ رنــــګ د ضــــرورت نخښـــــه ده
ســــتا موســــکۍ خولــــه د ســــخاوت نخښـــــه ده

چـــاره د پېښـــو بـــه ځـــوک څنګـــه وکـــړي؟
هــــره يــــوه دلتــــه د قيامــــت نخښـــــه ده

مـا وېږ د خـولې پـه سـوال مـې پټـه خولـه شـوې
وېږ خاموشـــــي د اجــــازت نخښـــــه ده

پــــه تيټــــو ســــترګو دې خوابــــدی نــــه يــــم
دا پــــه پښــــتو کــــې د الفــــت نخښـــــه ده

پالمــــــه ديــــــن د پښــــــتونوالي ســــــره
هــــم مــــې ايمــــان هــــم مــــې غېــــرت نخښـــــه ده

"حســــنه" ســــپک لوبنــــی کړنګــــا ډېــــره کــــړي
ســــتا خاموشــــي ســــتا د عــــزت نخښـــــه ده

## غزل

مونږه پښتانه يو مينې هم کوو د غلا غوندې
مونږ چې کړل خواږه دا ثوابونه د ګنا غوندې

بل څه کمال نه غواړي سياست زمونږ په خاوره کې
دروغ به داسې وايې چې ښکاره شي د رښتيا غوندې

څه وشو که دم رانه ظالم بېلتون اېستلی دی
ګرځي مې ستا مينه په رګو کې د اروا غوندې

زور يې چې تمام شي د ارمان د برېښو کې پکې
ويره مې د زړه ورته لمن کړه د بيديا غوندې

څوک به ښکلي پوه کړي چې د خولې ورکړه دې داسې شي
ځان او بل پرې دواړه شي خوشحاله د خندا غوندې

هله راڅرګنده د ملت د زوال نخښه شي
پټ چې حقيقت د خوف په ګرد شي د معما غوندې

څومره ژر رالنډې فاصلې د اجنبيت کاندي
يو د چا کاته په سترګو کې اشنا غوندې

کم دي چې پوهېږي د "حسن" د شعر په اند و واند
مه يې تعبير غواړه له هر چا نه د رويا غوندې

افسانې ته د دردونو مې عنوان شو
وو مېلمه د زړه حجره کې خو ميزبان شو

بيا ځواب د لېوني زړه راته ګران وو
له انکار نه چې اقرار راته اسان شو

## غزل

ستا پښتني مينې ته پېغور نه شوم
ولو پدمه مات شومه خو خور نه شوم

جام لکه د گل يمه هر تربي ته
تش له رنگ و بوی نه شوم نسکور نه شوم

مر لکه حباب به شم که لوخ شومه
زه پښتون خو مات د چا په زور نه شوم

چيغې يې د څړيکو زما تر خوله وځي
ستا د زړه پرهر ته که ټکور نه شوم

څه که له گلپانو نه تراشم غزل
خور لکه خوشبو خو ستا په لور نه شوم

تا که د ملالو سترگو تور نه کړم
شکر دی چې ستا پر لمن تور نه شوم

تا څنگه کابل کې پيالې پورته کړې
زه چې په لندن کې هم مېخور نه شوم

یو مې ووړ "حسنه" ترې د زړه قرار
څه که یې پر شونډو باندې شور نه شوم

چېرته مې تنده د وطن ماته کړم
جنگ رانه دم د زندگۍ خوړلی

د ژبورو شملورو کابل
اوس د سرکوزو خاموشۍ خوړلی

## غزل

لاړل لحد ته د کفن په تمه
وو چې زمونږ د ځنکدن په تمه

مینځم په اوښکو له ښو گردونه
بیا شو ماښام د دروغجن په تمه

کړې مو ډالۍ د پرهرونو جامې
هر یو ازغي ته د گلشن په تمه

هم به شمیري د خپل غربت غمونه
هم به گڼي شپې د وطن په تمه

دا د نظام د ناروغۍ نخښه ده
غریب چې ژوند کړي د شتمن په تمه

خدایه مرۍ یې له سلگو ډکه کړې
څوک چې دي زمونږ د ځنکدن په تمه

څوک به د یار څوک به د خوب غېږ کې وي
څوک به لا ناست وي د "حسن" په تمه

## یو شعر

رنځور ذهن کې افلاس د اندېښنو وي
خو افراط د اندېښنو هم لېونتوب دی

✵

زمونږ به روږه د پرد بسې وي په زړه
د بختورو به اختر وي په کور

د چا به خوله کې خندا نه ځايېږي
د ځينو ځينو به محشر وي په کور

## جنازه د شهید زوی وه

زمونږ په کلي غوږېدلی
نوی نوی وو څوړ منهی
سپینې واورې یې له ځمکې ټولولې
لکه نوی تنکی ځوان چې
سپین پلو له پېغلې اخلي

د پستو ورېمو خپې وې
د (سلیم) د ځوانۍ شپې وې
د واده خوږې شېبې یې
ته وا شاتو کې راښنې وې
چې په لپه کې د اوښکو
ده وه غوښتې له مولا نه
په هاغه غېږ کې یې شپې وې
ترې چاپېره پلوشې وې
یوه ورځ په درمنده کې
د ځوانانو مست اتڼ وو
د ډولچیانو سره څنګ ته

یو څو چټ ژنې ولاړ وو
یو یو لاس یې وو غوړونو ته نیولی
د ځوانۍ له شوره ډکې
په ډېر سوز یې غرنۍ سندرې ویلې
دی هم سپین څادر په کوټ کې
د اتڼ په ننداره وو

یو ناڅاپه غږ د شوبلو
فضا ټوله کړه خیرنه
د سندرو اروا ګانې
د وحشت خپسو یوړې
لکه وریځې چې په ورو ورو
د لوړ غره شاته راخېږي
هسې ناست په سر د شوبلو
د پوځیانو خړ سرونه
د کنډو تر شا ښکاره شول

په څپلیو کې راتلې د زنځیرونو
ورو په ورو شوې راڅرګندې ټولې شوبلې

هلته لرې یو دهقان وو
بېل په مټ کشت ته روان وو

قوماندان قومانده ورکړه
چې راتاو کړئ دا کم عقله
څو عسکر پسې راکوز شول
په کونداغ د کلکوف یې
په ملا تات کړ لکه لښته

لاس او پښو نه یې راونیو
په زانګو یې قوماندان ته ورګوزار کړ
قوماندان ورته په خېټه کې بوټ کېښود
ترې یې وپوښتل په قهر
چې مو چېرته دي ساتلي
ګوډاګیان د امپریالیزم

له ګردونو او له اوښکو
د دهقان سترګو کې جوړ شو منډ د خټو

په خوارۍ یې کړې ورپورته سر لښکر ته
وې: صاحبه معافي غواړم
شي بدله دې پر ګل ستا سې خبره
خو پرې نه وه رسېدمه
په ساده ټکو کې یو ځل
که یې بیا راته تکرار کړې
قوماندان په لوړ غږ نوم د )سلیم( واخیست

د خولې لاړې يې پرمخ د دهقان توی شوې
په دې منځ کې څوک له شانه
قوماندان ته ورپه غوږ شو
چې )سليم( مو لاس ته راغلی
په يو ټانک کې مو تړلی

دې سره شوبلې شوې ټولې
د چاونۍ په لور کتار شوې

د )سليم( په سپېره برخه
د زندان کوټه قلفي شوه
د مېرمن له ستر گو لرې
ترې نه تاو پل څرخي شوه
غم د هجر يې په زړه کې
ارمانونه کونجلک کړل

د دوران څرخ څرخېدلو
د څرخي د پله زندان کې
د پنځو کالو واټن يې ووهلو
يوه ورځ په دې موده کې
يو د کلي مشر راغی
د سليم پلار يې خبر کړو
چې ستا زوی دی شهید شوی

پـه اینگور دې رحم وکړه
دا بل زوی ته په نکاح کړه

ددې مشر دا خبره
د پلار مات زړه ومنله
د ډولۍ نوم یې پرې کېښود
جنازه د شهید زوی یې
د بل زوی مخې ته کېښوه

دوه کلونه چې نور تېر شول
د )سلیم( تقدیر په بله دډه واوښت
له زندانه شو راخوشی
د خوښۍ اوښکې یې تویې کړې

ټپي زړه ته یې ورپه شا کړ
پنډ د هیلو او دردونو
د امید او حسرتونو
د خپل کور په لور روان شو

د راتگ یې اوازه شوه
په ټول چم باندې درنه شوه
چې خبر یې له راتگ شو
په ټول کور یې زلزله شوه
تښتېده ځمکه له پښو نه

لههر زړه پورته لمبه شوه

په ماتم د کور ورګډ شو
مور او پلار ترې غېږې تاو کړې
دده تمه وه په زړه کې
چې هر لوري ته نظر کړي
هر کلی به یې موسکا کړي
خو ویرژلی ټول بورجل وو
ژړاګانې ترې نه تاو دی پکې ناست وو
پلار یې تم کړ په انګړ کې

ده کړ ځار د هاغو سترګو
چې باور یې وو په زړه کې
چې په غېږ کې د نظر به
ترینه وځنډي دردونه
خو نن وریت هغه نظر وو
په لېمو کې د مېرمن یې

له کړکۍ یې اورېدلې
د هغې د سلګو ځړیکې
مور یې مخ ته اچولې
په وار وار غبرګې څپیړې
د پلار سرو اوښکو یې لارې
سپینه ږیره کې وې جوړې

مور یې پلار تر ږیرې ونیو
چې دې زوی شو زاره چاودی
بس خبر یې کړه له غمه

د پلار چیغو یې اور واخیست
ټول وطن یې په سر واخیست
یو یو ټکی یې انګار شو

په غوږونو کې د زوی یې
کړل ورتوی لکه نغري کې
شوې له زوی نه یې تیاره کې سترګې ورکې
بار پر سر یې ټول جهان شو

د پلار اوښکې یې کړې پاکې
وې: چې پلاره ژړا بس کړه
د څرخي زندان له قیده
که خپل خوار ژوندون ازاد کړم
مرګ خو شته دی بابا جانه
زه به خپله ورته ورشم
په خپل رحم به مې خلاص کړي
له سزا ددې زندان نه.

ستا د څڼو هر يو خم ته به يې خم وو
خو دا سر يې پر اوږو د پښتانه دی

هسې سترګې يې دنيا کړلې هوښيارې
کنه زړه خو د "حسن" لا دېوانه دی

# غزل

زمــا هــره ارزو يــې د نظــر پــه غبــږ کــې پرېوتــه
ســـترې قافلـــه وه د رهبـــر پـــه غبـــږ کـــې پرېوتـــه

مــا تــرې نــه څــو ځلــه د الفــت پيــڅــې راتــولې کــړې
هــر ځــل بــه مــې بيــا لکــه شــرر پــه غبــږ کــې پرېوتــه

څــه وشــو زاهــده چــې پــر مــا بانــدې رارنگــه شــوه
ډکــه صــراحي وه د ســاغر پــه غبــږ کــې پرېوتــه

ما پـر دغـو اوښکو ستا خاطر کله درونـد کړی دی؟
دا خــو وه ويالــه د ســمندر پــه غبــږ کــې پرېوتــه

هســکه د قومونــو پــه کتــار کــې وه تــر تولــو نــه
غــاړه د پښــتون چــې د خنجــر پــه غبــږ کــې پرېوتــه

خلاصه مې کړکۍ چې د موسکا ورتـه "حسنه" کـړه
بيــا مــې نــابيره لکــه لمــر پــه غبــږ کــې پرېوتــه

# غزل

اسویلی مې چې بیا شال د ګلبدن وړي
دا څپې د نسیم عطر د ګلشن وړي

ستا د شونډو په مچکو به رسوا شم
چې بې پامه خوري انار داغ په لمن وړي

په دا څه شو که لښکر وي د پسونو
چې سالار یې وي زمری خوب د دښمن وړي

چې پر خپلو پښو یې نه وي روان کړی
په سیلۍ به د حالاتو خپل وطن وړي

چې په خوله کې یې نغمې لکه شپېلۍ وي
له مارانو خلکو زړونه زهرجن وړي

د پښتون په قربانۍ ګډ شوی چور دی
څوک یې غوښې تښتوي څوک یې خرمن وړي

د پردي وطن بادونو کې به مړ وي
خدا پېژده کوم لور ته به خاورې د "حسن" وړي

یو شوق د دیدن خو بې علمي له دین نه
بل رنځ د حرص او ناپوهي د پښتون

په هر یو دور کې دښمن د پښتون
په دې وسله کړي تباهي د پښتون

چې تنها کو یې قدم په لرزه نه کړو
دا مېخونه مې وهل د زړه په تلو

زلفې هیلې دې په اوښکو که درنې وي
راشه وایې چوه زما د زړه په ولو